# مخکښ شهید




لیکنه: لوچیاپڼ

ژباړه: فرهاد ویاړ



ليوون – هسو په يوه بيوزله کورنۍ کې نړۍ ته راغی. د ليو پلار خياط وو، خو د آزادۍ څخه مخکې يې ژوند په يخنۍ، سختۍ او ولږې سره تير کړ.



د کوچني ون– هسو د ژوندانه پیل له کړاو او رنځونو سره مل وو. یوه ورځ چې د ونګ د مالټو د بڼ له خوا تیریده، د بڼ مالك په هغه د غلا تور ولګو او ډیر زیات یې ووهو. زموږ دې ګران کوچني خپلې اوښکې پاکې کړې، خو هغه کرکه چې له ارباب څخه په زړه کې اخیستې وه، هیڅکله یې هیره نکړه.



د ون – هسو پلار یو صادقه سړی وو او له غریبۍ سره سره حاضر شوی نه وو چې مالك ته تریاك خرڅ کړي. د همدې لپاره بیرحمه ارباب او «د سولې ساتونکي لښکر» هغه زندان ته واچو.



د هسو مور، خپل زوي زندان ته بوتلو چې خپل پلار ووینې؛ هغه پلار چې له بدن څخه یوازې پوستکې او هډوکی پاتی وو. په داسې یو ټولنې کې بیچاره ګانو چا ته کولاي شول خپل شکایت وکړي.



بالاخره غريبي دومره د دې کورنۍ وضعيت خراب کړ، چې د هسو مور مجبوره شوه د کار لپاره د ارباب کور ته لاړه شي. کله چې به هسو تللو چې خپله مور هلته ووينې، د ارباب ښځې به هغه ته د ننوتلو اجازه نه ورکوله او خپل داړونکی سپې به يې هغه پسی ورکشی کو.



تر دې چې بالاخره یوه ورځ سپي هغه وخړو. شلیدلې شلیدلیې جامې ورته لا وشلولی او د پښې یو دوه ځایونه ورته هم ژوبل کړل.



په ۱۹۴۹ کال کې کمونیست ګوند د مرتجعینو د ړنګولو لپاره د هیواد ټول وګړي رهبري کړل. هغه کلی، چې لیوون – هسو په کې ژوند کاوه، هم آزاد شو. هسو چې له خوشالۍ په جامو کې نه ځایده، په لیوالتیا د پوځ هرکلي ته لاړ.



يو شمير كسانو د ارضي اصلاحاتو د پلي كيدو لپاره د كليو لاره ونيوله او د كليوالو منځ ته لاړل. هغوې له غريبانو سره اړيكې ونيولې او د كليوالو د تيرو دردونو او رنځونو په اړه يې پوښتنې كولى او ولسونه يې د اربابانو په وړاندې مبارزې ته وهڅول.



د مبارزې په غونډه کې، هغه کلیوال چې په بیرحمۍ استثمار شوي ول، بیوزله او د ستم تر لاندې دهقانانو او همدا شان د منځني طبقې کروندګرو د اربابانو له جنایتونو پرده پورته کړه.

لیوون ـ هسو خپله پښه چې د ارباب سپي داړلې وه، وښوده. هغه همدا شان توضیح ورکړه چې څرنګه اربابان بې له کوم علته بیچاره خلک وهي.



په دې وخت کې ناڅاپي د غونډې له منځه يو غږ راپورته شو:«مړه دې وي اربابان!» د طبقاتي دښمن په وړاندې د جګړې لپاره، ځواکمنې مبارزې په بشپړ ډول شکل وموند او پياوړی شوه.



ارضي اصلاحات په بریالیتوب پای ته ورسیدل. بیوزله کلیوال د ځمکې څښتن شول او په خپلو ځمکو یې کار کاوه.

د لیوون ـ هسو کورنۍ ته هم یوه ټوټه ځمکه او یو کور چې د ژوندانه لپاره یې بس وه، ورسیدل.



د انقلاب څخه مخکې، د ښوونځیو ورونه د غریبو ماشومانو په مخ تړلي ول. اوس کوچنی ون هسو نوې جامې اغوستلې، بکسه یې اوږې ته اچوله او ښوونځي ته روانیدو.



ون ـ هسو په سرلوړۍ د ځوانو مخکښانو سره یوځای شو. سور دستمال یې غاړې ته وتړو او تابیه یې وکړه چې «ښه مطالعه وکړي او هره ورځ یو ګام مخې ته کیږدي» څو یو وړ مخکښ شي.



د هغه ځای د ګوندي ناحيې سرپرست، کاکا يو، يو متقاعد پوځي وو. هغه به اکثراً ماشومانو ته له جګړې او انقلاب څخه داستانونه ويل.



د ليوون – هسو د مبارزو او زړرو كسانو داستانونه ډير زيات خوښيدل، لكه: د هوانګ چي – كوانګ داستان چې ځرنګه نوموړي خپل ځان د دښمن د ټوپك په ماشه واچو؛ د تونګ تسون - جو داستان چې څنګه يې د دښمن د جبهې په منفجرولو سره ځان هم قرباني كړ او همدا ډول د ليوهو- لان داستان چې دښمن ته د تسليمدو پر ځاى يې ترجيح وركړه ځان قربان كړي.

ليوون – هسو د دې داستانونو څخه د اتلوالى او ميړانې درس زده كاوه.



د آزادۍ څخه مخکې ژوند له کړاونو ډک وو، خو اوس د خوشالۍ روزګار راغلی وو. هر څومره چې به د هسو په تن کې د وطن او ولس سره مینه او شوق زیاتیده، په هماغه اندازه به یې له اربابانو سره کرکه پیدا کوله. یوه ورځ یې د خپلو ورځني یادونو په یوې پاڼې کې داسې ولیکل: «زمونږ د هیواد هر ماشوم ښایي د ولسونو د خدمت لپاره قدم پورته کړي.»



په ۱۹۸۵ کال کې کله چې په کليو کې ولسي ټولنې جوړې شوې، ليوون هسو د دې ټولنو له غړو سره اوږه په اوږه په توليدي کارونو کې فعاله رول ولوبو.

يوه ورځ کله چې هغه په کروندې کې کار کاوه، وې ليدل چې ارباب په کرونده کې ګټې اچوي او غواړي چې کرونده خرابه کړي.



لیوون – هسو ارباب د ګوند ناحیه ای چارواکي ته له ځان سره بوتو او ارباب هلته په خپلې خرابکارۍ اقرار وکړ.



د ګوند ناحیه ای چارواکي، د لیوون – هسو د کار ستاینه وکړه:

ـ لیوون – هسو، ډیر ښه کار دې وکړ. مونږ باید تل د ولسي ټولنو له ګټو څخه ملاتړ وکړو!



کله چې په ولسي کروندہ کې بوټو مرچ وکړل، لیوون – هسو د ولسي ټولنې له نورو غړو سره یوه غرمه د مرچو د شکولو لپاره ولاړ، چې سبا وختي یې بازار ته د خرڅ لپاره ویسي.



کله چې د ټولنې غړي د مرچو په شکولو بوخت ول، ارباب واک د مرچو هغې خوا کروندې ته لاړ.



ليوون – هسو په خوښۍ او ښادۍ سره ټوکرۍ يو په بل پسې له مرچو ډکولې چې د ګوند ناحيه اى چارواکي ورته وويل: مور دې تا ته په تمه ده او ښه به دا  وي چې کور ته ستون شى او له هغې سره مرسته وکړى.



ليوون – هسو د كور لاره ونيوله او په داسې حال كې چې ټول فكر يې مور ته اوښتي وو، لږ څه نور يې هم خپل قدمونه تيز كړل.



ناڅاپي يې په لاره کې يو تور هيکل وليد چې په سيوري کې حرکت کوي، له ځان سره يې وويل دا څه کيداى شي؟



دا ارباب وانګ وو چې مرچ يې غلا کول! ليوون – هسو وربانديې چيغه کړه:

ـ ای وانګ جونګ هسو، دا ته يې چې بيا هم د ولسي ټولنې مال غلا کوئ!



ارباب، ليوون – هسو وليد، ارباب د ليوون څخه کرکه درلوده او ترې ډاريده. ارباب کوښښ وکړ چې وتښتي، خو ليوون – هسو يې مخه ونيوله.



لیوون – هسو د ارباب وانګ په ټوکرۍ کې مرچو ته اشاره وکړه او په قهر یې وویل:

ـ دا دې غلا کړي دي! تا خو د خلکو مال غلا کړی دی!



ارباب وانګ مصنوعي غوندې خندا وکړه او څو روپیۍ یې د لیوون – هسو په لاس کې ورکړی او په زارۍ یې ورته وویل:

ـ وګوره، پری مې ږده چې لاړ شم. دومره خبره نه ده، لږې شان پیسې دي، لاړ شه او ځان ته یوه څه خوړه واخله.

لیوون – هسو پیسې د ارباب په مخ وویشتې او وې ویل:

ـ مرداره، فکر کوې چې کولای شې ما سره معامله وکړی!



لیوون – هسو په ډیر زړورتیا له ارباب سره مخامخ شو.

ـ د ولس مال غلا کوئ او بیا هم غواړئ چې یو زلمی مخکښ وغولوئ.

یا اله حرکت وکړه چې د عمومي امنیت اداري ته لاړ شو.

لیوون – هسو دا وویل او د ارباب ګریوان یې ونیو.



خو ارباب، لیوون – هسو ته ګواښ وکړ:

ـ لاس دې لیرې کړ یا نه وژنم دی.

لیوون – هسو په کلکه ځواب ورکړ:

ـ زه له تا نه، نه ډارېږم!

هیڅکله به پرې نه ږدم چې ستا غوندې چټل غل له ما وتښتي.



ارباب وانګ، د ليوون – هسو لاس ونيو او په رښتيا يې غوښتل چې وې وژني

خو هغه لا هم چيغه وهله:

ـ يا اله ژر! اوس دې کار دې ځای ته ورسيد چې مرچ غلا کوئ!



ليوون – هسو په ډيرې ميړانې له ارباب سره مبارزه کوله.



خلکو شورماشور واورید او د کروندې خوا ته روان شول. مګر هغوې لږ ناوخته ورسیدل، څکه چې لیوون – هسو په ۱۴ کلنۍ کې په میړانې خپل ژوند له لاسه ورکړی وو.



د ولسي ټولنې جنګياليو هماغه شپه له ښارنې وروسته ارباب وانګ ونيو ښو د ځوان اتل غچ ورڅخه
واخلي.



ليوون – هسو د خلکو د مال څخه د دفاع په لار کې خپل ځان له لاسه ورکړ او شهيد شو. بله ورځ د ارباب وانګ ښکاره محاکمه جوړه او قاتل په اعدام محکوم شو.



د دې ځوان او میړني قهرمان سرګذشت، چې د ولس په لاره کې شهید شوی وو، په لږه موده کې په ټول هیواد کې خپور شو. په هر ګوټ کې پیغلو او ځوانانو د هغه له داستان څخه زده کول چې ګوند او سوسیالیزم ګران ولري او د خپلې انقلابي روحیې په پالنې کې هلې ځلې وکړي او د یوې بې طبقاتې ټولنې د جوړیدنې لپاره د طبقاتي دښمنانو په ضد په میړانې سره مبارزه وکړي.

## "سیند خپرندویه" خپاره کړي دي:

۱.د کمونیزم اصول، فریدریش انګلس، ژباړه:فرهاد ویاړ

۲.دیالکتیک ماتریالیزم د ځوانانو لپاره، رضا قربانی، ژباړه: مرینه سحر

۳. د یوه شاعر اندیښنې، احمد شاملو، ژباړه: فرهاد ویاړ

۴.یو شعر چې کرکه ده، پاڅون دی او انتقام ـ سپیځلی

۵.مور مې ښکلې نشوه، رضا فرمند، ژباړه: فرهاد ویاړ

۶.مارکسیزم او رفورمیزم، و.ا.لنین، ژباړه: هاشم سهار

۷. لیوهولان ـ یو ستر ژوند! یوه پرتمینه مړینه!، ژباړه: فرهاد ویاړ

۸. د شناخت په اړه یو څو خبرې، صمد بهرنګي، ژباړه: ځرک

۹.ارنستو چه ګوارا، م.بنامین، ژباړه:فرهاد ویاړ

۱۰.اولدوز او کارغان، صمد بهرنګي، ژباړه: ف.رووفي

۱۱.کوراوغلو او ګنجی حمزه، صمد بهرنګي، ژباړه: ف.رووفي

۱۲. د دیالکتیک ماتریالیزم او تاریخي ماتریالیزم په اړه، ی. و. ستالین، ژباړه: فرهاد ویاړ

۱۳– زما ګیتار! ویکتور خارا، ژباړه: فرهاد ویاړ

## خپریږي:

# د ویتنام حماسه، د امریکې رسوایي

